



نبوي مرغلري

رسول الله (ص) فرمایلي دي:
ژباړه: د لوښو څخه نفرت مه کوئ، ځکه لوښي زیاتي مینه ناکي او محبت کوونکي دي.
﴿رواه احمد﴾

# طلوع افغان

غوره ویناوي

امام احمد بن حنبل (رح):
بد ژوند هغه دی چې بدن ژوندی وي، خو دین په کبنې مړ سي.

د امتیاز څښتن:
د کندهار اطلاعات او فرهنګ ریاست

مؤسس: مولوي صالح محمد "هوتک"

په اوونۍ کې دوه واره چاپیږي

د تأسیس کال: ۱۳۰۰ لمریز، چهارشنبه ۶/شعبان المعظم/۱۴۴۶ هـ ق، ۱۷/سلواغه/ ۱۴۰۳ ل کال – ګڼه (۶۷) Wednesday-5-February-2025 Issue: 67


## د مطالبو سرلیکونه



## د ریاست الوزرا اقتصادي مرستیال د یوناما له مرستیال سره پر مهمو موضوعاتو خبري کړي دي




د ریاست‌الوزرا اقتصادي مرستیال ملا عبدالغني برادر اخند، د سه شنبې په ورځ په افغانستان کې د ملګرو ملتونو د مرستندویه ماموریت «یوناما» له مرستیال اینډریکا راتوات سره کتلي دي.

باختر اطلاعاتي آژانس ته د ریاست الوزرا اقتصادي معاونیت د مطبوعاتي دفتر څخه د رسېدلو معلوماتو له مخې، په دې کتنه کې د ریاست الوزرا اقتصادي مرستیال، په افغانستان کې د طبیعي پېښو پر مهال، زیانمن سوو افغانانو ته د «یوناما» له لوري د رسول سوو مرستو مننه کړې ده.

ملا عبدالغني برادر اخند د یاد بنسټ څخه غوښتي چې په افغانستان کې د بشري مرستو په توزیع کې شفافیت رامنځته او خپلي مرستي دې پراختیایي برخو ته واړوي، څو له یو لوري هیوادوالو ته د کار زمینه برابره او له بلي خوا ورته د ژوند په مهمو برخو کي اسانتیاوي ۴مخ

## په کندهار کي د کتابونو درې ورځنی ننداړتون پرانیستل سو




د ننداړتون د پرانیستني په مراسمو کي د کندهار د اطلاعات او فرهنګ رئیس مولوي انعام الله سمنګاني، د کندهار پوهنتون رئیس شیخ الحدیث مولوي عبدالرحمن طیبي، د پوهني ریاست مرستیال مولوي اکرم شاه عاصم، په جنوب لوېدیځ زون ۴مخ

## د کانټینرونو په تړاو؛ د مالیې وزارت اعلامیه!

د سوداګریزو شرکتونو له لوري د راوړل سوو کانټینرونو په تړاو؛ د مالیې وزارت اعلامیه!

د مالیې وزارت څخه د سوداګرو په غوښتنه، د ګمرکونو لوی ریاست د اداري ناستي د پرېکړې، د ګمرکونو او عوایدو معینیت د منظورۍ پر اساس، هغه کانټینرونه چې د سوداګریزو شرکتونو له لوري افغانستان ته په لنډمهاله توګه را وارد سوي وي، د موجودیت درې میاشتي موده یې بشپړه کړې وي او پر ټاکلي وخت بیرته صادر سوي نه وي. څښتنانو ته یې په درنښت خبر ورکول کیږي، چې خپل کانټینرونه د روان ۱۴۰۳ مالي کال د کب/حوت میاشتي تر پای ته رسېدو مخکي بیرته صادر کړي.

د دې پرېکړې د نه عملي کولو په صورت کي به، موجود کانټینرونه واردوي، لازمي ده چې د درو میاشتو په موده کي یې بیرته له هېواده صادر کړي، د نه صادرېدو په صورت کي به د ګمرکونو اصول پر پلي سي.

## د ۹۰ میلیونو افغانیو په لګښت د برېښنا د لیږد چاري پیل سوې



د نیمروز ولایت ځایي مسئولینو ویلي، د دې ولایت هوایي ډګر او مرکزي زندان ته، د ۹۰ میلیونو افغانیو په لګښت، د برېښنا د لېږد چاري پیل سوي دي.

په جوړ سوو مراسمو کي د نیمروز والي شیخ محمد قاسم خالد په خپلو خبرو کي د دې پروژې پر اهمیت ټینګار وکړ او ویې ویل، د دې پروژې په بشپړېدو سره به د هوایي ډګر او مرکزي زندان د برېښنا ستونزي هواري، په نوو او عصري وسایلو سمبال سي. ۴مخ

## په علمي ځانګو کي د سکالرشیپونو تفاهم لیک لاسلیک سو



د کندهار د اطلاعات او فرهنګ ریاست او بېنوا د لوړو زده کړو مؤسسې ترمنځ، په دوو علمي څانګو کي د سکالرشیپونو تفاهم لیک لاسلیک سو.

د دې علمي تفاهم لیک له مخي به د اطلاعات او فرهنګ ریاست اړوند، د ځوانانو چارو آمریت بېنوا د لوړو زده کړو مؤسسې ته په انجنیرۍ او کمپیوټر ساینس پوهنځیو کي ۱۱۰ تنه ۴مخ

## زرونو بزګرانو ته د روزني تر څنګ مرسته هم ورکړل سوه



د کندهار ولایت په کښته میوند ولسوالۍ کي، زرونو بزګرانو ته د کرهنیزو مهارتونو د لوړولو په موخه روزنه ورکړل سوه او همداراز په دامان ولسوالۍ کي تر ۳ زره زیاتو بزګرانو ته د غنم اصلاح سوی تخم او کیمیاوي سره وو وېشل سوه.

د یاد ولایت د کرهني، اوبو لګولو او مالدارۍ ریاست رسنیو ته په استول سوې مطبوعاتي اعلامیه کي ویلي، د دې ریاست په هڅو، د ملګرو ملتونو د کرهني او خوراک نړۍوال سازمان (ایف. ای. او) په مالي ملاتړ، د اکتیډ مؤسسې ۴مخ

## لسونه کېلو ګرامه نشه یي توکي نیول سوي دي

د کندهار ولایت د امنیې قوماندانۍ ویاند مولوي اسدالله جمشید ویلي، امنیتي ځواکونو په تېره یوه اوونۍ لسونه کېلو ګرامه نشه یي توکي نیولي دي.

په یادو نشه یي توکو کي ۵۸۵ ګرامه چرس، ۶۵ ګرامه ښیښه، ۴۰ ګرامه تریاک او ۴ سیټه موبایلونه شامل دي، چې په تړاو یې ۴ تنه شکمن کسان هم نیول سوي دي.

همدارنګه امنیتي ځواکونو د ښار له بېلا بېلو برخو ۱۱۴ تنه په نشه یي توکو روږد ټول کړي او روغتیایي مرکزونو ته یې معرفي کړي دي.

د یادوني وړ ده، چې تر دې وړاندي هم څو واره دې ته ورته نور نشه یي توکي نیول سوي او تر څنګ یې زیات کسان په نشه یي توکو روږد کسان نیولي او د تداوۍ مرکزونو ته یې د تداوۍ له پاره معرفي کړي دي.



## کتاب د علم ځولۍ؛ یو مؤثر ننداړتون

په کندهار کي روانه اوونۍ (کتاب د علم ځولۍ) تر عنوان لاندي یو درې ورځنی ننداړتون جوړ سو، دغه ننداړتون د کندهار ښار، د ارګ بازار په کتاب او قلم مارکېټ کي، د کندهار اطلاعات او فرهنګ ریاست مسئولینو په نوښت، د افغان بېسیم مخابراتي شبکې په همکارۍ جوړ سو.

په دې ننداړتون کي د کتاب او قلم مارکېټ ټولو کتاب پلورنځیو خپل کتابونه ننداري ته ایښي ول، د ښار زیاتو کوچنیانو، ځوانانو او سپین ږیرو کولای سوای، چې د ننداړتون څخه لیدنه وکړي، کتابونه خوښ کړي او په ښه تخفیف یې رانیسي، ښه خبره لا دا وه، کوم چاچي کتاب رانیوی، هغه ته به یو ټوکن ورکول کېدی، په ټوکن کي به مختلفي جایزې ورته راوتلې، په جایزو کي بایسکلونه، موبایلونه، کمپیوټر، کتابونه، ساعتونه، کتابچې، قلمونه او بستې شاملي وې.

له کتاب سره د میني د زیاتېدو او د مطالعې دود د غوړېدو له پاره دغه ډول ننداړتونونه جوړېدل، ډېر مؤثر تمامېږي، دا د اطلاعات او فرهنګ ریاست یو ډېر پرځای ګام دی.

دا اول وار نه دی، تر دې وړاندي هم تقریبًا یو کال مخکي د کندهار اطلاعات او فرهنګ ریاست د مسئولینو له لوري همدغسي یو ننداړتون جوړ سوی و، چې ډېره ښه نتیجه یې ورکړې وه او په زرونو کتابونه پلورل سوي وو.

د کتابونو دغه ډول ننداړتونونه دي لا زیات سي، په کال کي یو واري نه، بلکي څو واري دي جوړ سي.

په کندهار کي له کتابونو سره د ځوانانو علاقه ډېره کمه ده، له بده مرغه په دې وروستیو کي سمارټ موبایلونو، فیس بوک، یوټیوب، ټیک ټاک او پبجي له امله بیا دغه علاقه لا پسي کمر نګه سوې ده، چې د دغسي ننداړتونونو جوړېدل به، تر ډېره مثمر تمام سي.

د کتاب ننداړتونونه دي ښوونځیو او پوهنتونونو ته هم وغځېږي، په هره ښوونځي او پوهنتون کي دي د کتابونو دغه ډول ننداړتونونه جوړ سي، لوستونکو او پیرودونکو ته دي بېلابېلي جایزې په نظر کي ونیول سي، تر څو په دې توګه د کتابونو د مطالعې دود یو واري بیا را ژوندی سي.

اداره

## بېلابېل موضوعات

### ملګرتیا؛ تر اړتیا پوري ده!

پوهاند شاه محمود "بری"

انسانان د خپلو اړتیاوو په وخت کي وفادار وي، کله چي يې اړتیا پوره سي، د دوی وفاداري هم بدلېږي. همدا ډول ملګري خپل دوستان پر نیمه لار پرېږدي، د ښه تشخیص له پاره د نیمي لاري ملګري، یو په یو در پېژنو:

۱ – درواغ ویونکی:
که څوک ښه انسان وي، هیڅکله درواغ نه وایي، همدارنګه منفي خوی به هم و نه لري، د خپل ژوند څخه يې ځکه وباسه چي اراده يې کمزورې ده.

۲ – بد عمله کسان:
هغه څوک چي په چلم، سګرېټ او چرس څکولو باندي فخر کوي.

۳ – بې هدفه انسانان:
کله چي څوک معلوم هدف و نه لري، نو تاته به څه خیر در ورسوي، اړیکي ور سره پرې کړه!

۴ –بې باوره کس:
هغه کسان چي پر خپل ځان باور و نه لري، د کمزوري شخصیت څښتن دی، لیري ځني واوسه. یوه عامه مقوله ده، وایي: که له زمري سره وګرځې، زمری به اوسې او که له پسه سره ملګرتیا وکړې، د پسه عادتونه به خپل کړې.

۵ – له متعصب انسان سره ملګرتیا مه کوه:
یاد ډول انسانان د حق په وړاندي سترګي پټوي.

۶ –موسمي ملګری:
هغه کسان چي د خوشحالۍ په وخت کي مو ملګري وي، خو د غم او پرېشانۍ په وخت کي بیا هیڅ سر نه خلاصوي. همدارنګه هغه ملګري چي د قدرت په وخت کي جار او قربان درته وایي، خو د مقام او چوکۍ د لیري کېدلو سره سم دي بیا پوښتنه هم نه کوي.

۷ – ځان غوښتونکي کسان:
هغه کسان دي چي ستاسو د پرمختګ او کامیابۍ پر مهال، حسد درسره کوي او په ښو مو نه خوشحاله کېږي، د داسي ملګرو څخه مو کالي راټول کړئ!

۸ – د خرابو خبرو کوونکي کسان:
هغه څوک چي غیبت کوي، ملګري آزاروي، خبري په تمسخر سره کوي او د خپلو ملګرو د عزت خیال نه ساتي، نو لاره ورته ورکړې، څو د ساحې څخه لا هم ووځي.

۹ – د مطلبي ملګرو څخه ځان ساتل:
مطلبي انسان لاندنۍ نښانې لري:
– د نورو پیسې خرڅوي، د هغوی و جېب ته يې سترګي رډې نیولي وي، په خپله کنجوس وي او د ملګرتیا په وخت کي هیڅ مصرف نه کوي.
– که يې خپل کار خلاص سو، بیا مو پوښتنه هم نه کوي، دا ډول ملګري ته باید رخصت ورکړل سي.
– د خپل کار له پاره تاسو ته ټیلیفون کوي او ملګرتیا در سره پالي او بس.
– په هره خبره کي خپله ګټه او تاوان لټوي، دا ډول کسان د ملګرتیا وړتیا نه لري.
– مطلبي ملګري مو یوازي د پیسو درلودلو او خوښیو په وخت کي ملګري وي، خو د اړتیا په وخت کي مخ نه در اړوي.
که غواړې چي ژوند مو د ملګرتیا له پلوه په سکون کي تېر سي، نو پورته نومول سوي نیمچه ملګري مو د ژوند څخه رخصت کړئ!

## اسلام ولي په لومړیو پېړیو کي دونه ډېر پرمختګ وکړ؟

نعمت الله "شاکر"

لومړۍ پوښتنه: اسلام ولي په لومړیو پېړیو کي دونه ډېر پرمختګ وکړ، حتی رومیانو، مصریانو، فارسیانو.... د زړونو کلونو افتخاري تمدنونه پرېښوول او د اسلام تمدن يې غوره او انتخاب کړ؟

جواب: ښکاره خبره ده، چي اسلام د ستراتیژیو، موخو، پلان، پالیسیو او طرزالعملونو لرونکی بشپړ دین دی، چي په دې کي شک کول، د اسلام پر کمال شک دی او د اسلام پر کمال شک یوازي کافران کوي.

دوهمه پوښتنه:
نن ولي د مسلمانانو علمي، سیاسي، اجتماعي، اقتصادي او نور پلانونه د یهودو او نصاراوو له ستراتیژیو متأثر دي او په هره برخه کي چي وغواړي، مسلمانان ځپلای سي؟

جواب: د مسلمانانو علمي، سیاسي، اقتصادي، اجتماعي او نور پلانونه تر هغه وخته بریالي وو، چي مسلمانانو علم او پوهي ته ارزښت ورکاوه، د هر زمان او مکان د ظروفو او شرائطو سره برابري پالیسۍ او تګلاري يې جوړولې او تطبیقولې. د وخت په تېرېدو سره هغو غیر مسلمانانو، چي د اسلام راتګ يې د مذهبي، سیاسي، اجتماعي او اقتصادي رکود سبب سو، د مسلمانانو د بریا او پرمختګ رازونه تشخیص کړل، په مسلمانانو کي يې هغه ظرفیتونه له منځه یووړل او د اسلامي اصولو او لارښوونو څخه يې د خپلو اقتصادي، سیاسي، علمي او اجتماعي ترقۍ له پاره استفاده وکړه. نن يې په ټولو برخو کي ځانونه رسولي دي او مسلمانان د هغه سرګردان مسافر حیثیت لري، چي له یو قوي قوم سره د جګړې له پاره يې سفر پیل کړی وي، خو د سفر په جریان کي يې وسلې، مهمات او شتمني دښمن ځني وړې وي.

ډېر به پخوانۍ زمانې او لیرو سیمو ته نه ځو، همدلته به تېر پنځه ویشت کلونه وآرزوو:
له اشغال سره سم د اشغالګرو د (A) پلان پر اساس، د هیواد اداري تشکیلات پراخ سول، لوړ واداري او سیاسي بستونو ته لوړ معاشات وټاکل سول، د انکشافي مرستو له پاره د ډالرو باران پیل سو، ډېر بېوزله خلک هم په مستقیم او غیر مستقیم ډول میلیونران سول...

بشري مرستي هم تر اړتیا زیاتي وې، که څه هم ځیني يې په خپلو ساحو کي نه مصرفېدلې...

دواک او شتمنۍ له پاره معیارونه بهرنۍ اړیکي یا له سقوط سوي نظام سره د دښمنۍ تناسب یا نور عوامل او فاکتورونه وو.

ډېر وواکمن سوو او شتمن سوو داسي انګېرله، چي تر قیامته یا حداقل تر مرګه به همدا مزې او چړچې وي...

هر چا د خپلو مشروع او نامشروع عوایدو پر اساس، مصارف کول چي په نتیجه کي يې د عرضې او تقاضا توازن له منځه یووړ او ځیني کم عوایده کورنۍ متضرري سوې، چي هغه جلا بحث دی.

د عیش او لوکس عشرت فضا حاکمه وه، هر چا کوښښ کاوه، چي ډېر عواید ولري، حتی ځینو خلکو د عوایدو د لاسته راوړلو له پاره دیني او عرفي محدودیتونه هم ونړول، تر څو د خلکو سیال سي.

د اشغالګرو د ستراتیژۍ او (B) پلان پر اساس، د ۲۰۱۴ مېلادي کال په شاوخوا کي مرستي او پروژې کمي سوې، حتي ځیني ناتکمیل سوي پروژې هم همداسي پاته سوې او د ځینو بشپړو سوو پروژو پیسې بهرنیو قراردادیانو د داخلي قراردادیانو څخه وتښتولې، چي په نتیجه کي يې د هیواد زیاتي طبقې اغېزمني کړې. ځینو افغانانو د خپلو قرضونو د تادیې له پاره د پلار او نیکه جایدادونه خرڅ کړل او ځیني سپین سترګي سول او د پوروړو پیسې يې نوشجان کړې.

د اشغالګرو د (B) پلان یوازي دا نتیجه نه وه، چي افغانان متضرر کړي، بلکه نتیجه يې دا وه، چي په مسلمانانو کي يې د یوې اسلامي شعیرې (قرض) مخه ونیوله، ځکه په تېرو پېښو کي باور صفر ته راکښته سوی و، دا يې د سود له پاره زمینه سازي سوه او سود هم څه ترویج سو، ما د اشغال تر ختمه پوري په پوهنتونو او علمي بنسټونو کي د درس پر وخت د اشغال د نورو تأثیراتو تر څنګ، دغه اثر هم ذکر کاوه.

د اشغالګرو د (B) پلان بله نتیجه دا سوه، چي د درنو عایداتو لرونکو خلکو عایدات کم سول، هغوی د خپلو مصارفو د پوره کولو له پاره هیڅ موقع له لاسه نه ورکول.

د اشغالګرو (C) پلان دا و، چي کرار –کرار يې پر خپل لاسپوڅي حکومت هم مادي او نظامي محدودیتونه ډېرول، چي حتی خپلو عسکرو ته به يې هم په میاشتو –میاشتو د معاش ورکولو ظرفیت نه درلودی.

د حاکم نظام په راتګ سره د مرستو اندازه کمه سوه، خو جریان يې قطع سوی نه دی، چي د خلکو ځیني مؤقتي اړتیاوي يې پوره کولې. ځیني افغانان رښتیا هم مرستو ته اړ دي او ځیني که مرستو ته اړ نه دي، خو بشري مرستو لټان کړي او د مرستي توقعات لري.

دا چي د دې مرستو څخه حاکم نظام ته ګټه رسېږي، که یا؟ هغه جلا بحث دی.

خو د مرستو بندېدل، د ولس او نظام ترمنځ د فاصلې سبب کېدلای سي، ځکه د نظام په راتګ سره قاطع اکثریت د حاکم نظام په راتګ خوښ وو. که مرستي بندي سوي وای، نو ممکن چا غبرګون نه وای ښوولای، ځکه له هر چا سره دا فکر و، چي د بهرنیانو وتل، د مرستي د بندېدو سبب دی، خو د تېرو څه د پاسه درو کلونو تبلیغاتو او عملي مرستو په نتیجه کي خلکو ته دا ښوول سوي و، چي بشري مرستي د سیاسي جریانونو او حکومتونو سره ارتباط نه لري.

نن په داسي وخت کي پر مرستو بندیز لګوي، چي له یوې خوا د ولس څه برخه د مختلفو وجوهاتو له امله له نظام سره لږ فاصله لري او له بلي خوا د مرستو بندوونکي د خپلو تصمیمونو له پاره داسي دلائل تړي، چي هغه سیاسي انګېزه نه لري.

نو ولس ته په کار ده، چي د حاکم نظام شل کلنه مبارزه، د مبارزې اساسي هدفونه او د هدفونو د لاسته راوړلو له پاره در نه قرباني هېره نه کړي، ځکه هم مبارزه د دوی د دیني، اجتماعي، اقتصادي او سیاسي آزادۍ له پاره وه او هم قرباني سوي اشخاص؛ د دوی زامن، وروڼه، وریرونه او نورو دوستان وو.

هوښیار خلک په لوی قیمت حاصل سوي څه په لږ څه نه پلوري.

حاکم نظام ته هم په کار ده، چي خپلي مبارزې، اسلامي نوم او نړۍوال موقف ته په کتو سره، د اسلامي اصولو مطابق، د اهل خبره او مسلکي اشخاصو سره تر مکرر و مشورو وروسته، د فرصتونو او ننګونو تو پیرونو ته په پام تصمیمونه ونیسي او بیا د خپلو تصمیمونو له پاره قوي او د تطبیق وړ پلانونه جوړ کړي او د متخصصو خلکو په مرسته يې تطبیق او تعقیب کړي.

## مولانا شرف الدين "یزدي"

عبدالنافع "حمیدزی"

په پښتو عالمانو کي هغه څوک چي په لومړي واري پې مورږ د مولانا شرف الدین "یزدي" له نامه سره آشنا کړي یو، هغه خوشحال خان خټک دی. خوشحال خان خټک د مولانا شرف الدین "یزدي" یادونه په دستار نامه کي په دا ډول سره کوي.

«په ظفرنامه کي چي تمام د امیر تېمور احوال دی، تألیف د مولانا شرف الدین یزدي، عجب نګارش د امیر د قزاقۍ د تردد په کښې سته، آفرین ورباندي.» (۱۴۰۲ ل. پاڼه ۹۸)

زوکړه او شخصیت:
شرف الدین علي بن شمس الدین علي یزدي مشهور په (مخدوم) او تخلص يې (شرف) و. د ۹ - ۸ هـ.ق پېړۍ د مشهورو شاعرانو، لیکوالانو، مؤرخانو او عالمانو له جملې دی.

تقریبًا ټوله ځواني يې د علومو په زده کړه کي تېره کړې ده. محمد مستوفي په (تاریخ یزد) کتاب کي لیکي چي شرف الدین "یزدي" په عراق او فارس کي د خپل وخت مشهور عالم ګڼي، چي د حاکمانو او پاچهانو له خوا د عزت په سترګه ورته کتل کېدل. دی د شاهرخ میرزا د دربار معزز شخص و او د هغه له خوا د (مخدومي) په لقب ملقب سوی دی.

په ۸۴۵ هـ.ق کال کي کله چي سلطان محمد بن میرزا بایسقر پر تخت کښېناستی، په دې وخت کي شرف الدین علي د یزد په ښار کي و. سلطان محمد شرف الدین په ډېرو تحفو سره و خپل دربار ته دعوت کړ. کله چي شرف الدین یزدي و قُم ته را ورسېدی او د حاکم د دربار په مشرانو کي شمار سو، خو له سلطان محمد سره وخت یاري و نه کړه.

په ۸۵۰ هـ.ق کي امیر تېمور پر اصفهان او شېراز باندي حمله وکړه. سلطان محمد تېښته کوي، خو ډېری درباریان يې پاتېږي، چي یو له هغو شرف الدین یزدي هم وي.

امیر تېمور شرف الدین ته هم تکلیف ورکوي، خو کله چي امیر تېمور مړ کېږي، د خراسان واک بیرته سلطان محمد تر لاسه کوي، دغه سلطان مولانا شرف الدین یزدي بیرته دربار ته راغواړي او د کاله ۱۵۰۰۰ زره دینار معاش ورته ټاکي.

مولانا شرف الدین یزدي په ۸۵۳ هـ.ق کي له سمرقنده یزد ته ولاړی او د (تفت) په کلي کي يې هستوګنه غوره کړه او په هغه ځای کي په ۸۵۸ هـق کي وفات سو او په شرفیه مدرسه کي چي خپله يې بنسټ ایښی و، ښخ کړل سو.

د حبیب السیر کتاب مؤلف (خواندمیر) چي له دې کتابه ما په خپله دې څېړنه کي ډېره استفاده هم کړې ده، د مولانا شرف الدین یزدي د وفات نېټه ۸۳۴ هـق ښیي، مګر دا یوه سهوه ده.

آثار:
۱ –ظفر نامه
۲ – کنه المراد فی الوفق والاعدا
۳ –الحُلَلُ المُطَرّز فی المعمّا واللغز
۴ – مناظر
۵ – منتخب
۶ –الکتاب فی علم الاسطرلاب
۷ – حقایق التحلیل
۸ – شرح اسماء الله
۹ – تحفة الفقیر و هدیة الحقیر (عربي او فارسي شعرونه)
۱۰ – منشآت یا تاریخ تېمور، په شعر سره (د اشعارو دیوان)

په دغو آثارو کي يې مشهوره آثار؛ ظفر نامه، حلل مطرز، قصیده بُرده او مجالس النفائس دي. (کهدویی، ۱۳۷۲ ل، پاڼه ۷۷، ۷۴، ۷۳)

مأخذونه:
۱ – خټک، خوشحال خان: سریزه، سمون، ترتیب او لغتنامه: د محمد معصوم هوتک. (۱۴۰۲ ل.). دستارنامه د خوشحال خان خټک). کندهار: علامه رشاد خپرندویه ټولنه
۲ – کهدویی، محمد کاظم. (۱۳۷۲ ل.). شرح آثار و احوال شرف الدین یزدی). آشنا, ۸۰ - ۷۳.

# د شیطان لښکر

خوښونه: شهید شیخ رحیم الله "حقاني"

(۱۰۴) برخه

## د خوارجو نوې څېره (داعش)

د سمره بن جندب رضي الله عنه روایت دی چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل:

ژباړه: له مشرکانو سره مه اوسېږئ او مه له هغوی سره یو ځای کېږئ، څوک چې له هغوی سره یو ځای سي، یا ور سره واوسېږي، نو د هغوی په څېر به بلل کېږي.

له دې روایتونو په صریحه توګه دا معلومېږي چې د کفارو په منځ کې اوسېدل حرام دي، خو مشکل دا دی چې دا روایات هم له کلامه خالي نه دي. د جریر بن عبدالله رضي الله عنه روایت مرسل دی او که متصل؟ په دې کې د محدثینو اختلاف دی، امام بخاري، امام ترمذي او امام ابو داؤد او نور رحمهم الله یې ارسال ته ترجیح ورکوي. بله دا چې په سند کې یو راوي ابو معاویه الضریر دی، پوره نوم یې: محمد بن خازم التمیمي دی، د ابن خراش او عبدالله بن احمد رأیه د ده په اړه داده چې یوازي د اعمش څخه یې روایات د منلو وړ دی، په نورو روایتونو کې د ده پر حافظه باندي اعتماد نه کېږي.

پاته سو د حضرت سمره بن جندب رضي الله عنه روایت، نو د هغه دواړي طریقې ضعیف دي، د لومړي طریق په سند کې یې اسحاق بن ادریس راوي دی، چې ګڼ محدثینو ضعیف بللی دی، بلکې یحیی بن معین ورته کذاب او وضاع ویلي دي، دارقطني یې منکر الحدیث او نسایي یې متروک الحدیث ګڼي.

د دوهم طریق په اړه د علامه ذهبي رأیه دا ده، چې د استدلال وړ نه دی، ځکه چې په سند کې یو راوي سلیمان بن موسی ابو داود متکلم فیه دی، د ده په اړه د نسایي رأیه داده: په حدیث کې مضبوط نه دی، ابن حجر فرمایي:

دامام بخاري رأیه داده: "له مناکیر" یعني دی منکر روایتونه هم نقل کوي. که دا روایات صحیح هم سي، نو بیا یې هم پر ټولو کفري هیوادونو باندي عمومي اطلاق نه صحیح کېږي، بلکې مصداق به یې یوازي هغه هیوادونه وي چې هلته مسلمانان په خپل دین باندي آزادانه عمل نه سي کولای او له هجرت پرته د اسلامي ژوند تېرولو بله لاره نه وي.

که دا روایت له خپل پس منظر (شالید) سره یو ځای وکتل سي نو خبره ډېره زیاته صفا کېږي: دا حدیث چې پیغمبر علیه السلام په کوم ډول حالتونو کي ارشاد وفرمایه هغه دادی:

چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم یوه سریه (ډله مجاهدین صحابه) د بنو خثعم قبیلې پر لور ولېږل، نو ځینو خلکو سجده ځان ته ډال کړه یعني سجدې ته ولاړل، تر څو مجاهدین پوه سي چې دوی مسلمانان دي او و یې نه وژني، خو هغوی هم د مجاهدینو د تورو خوراک سول، که څه هم هغوی په حقیقت کې مسلمانان ول. رسول الله صلی الله علیه وسلم ته چې خبر ورسېدی، نو د هغوی له پاره یې د نیمایي دیت ورکولو حکم وکړ او دا جمله یې ارشاد وفرمایله: زه له هر هغه مسلمان څخه بې زار یم چې د مشرکانو په منځ کې هستوګن وي.

عقلي استدلال:

یو عقلي دلیل دا هم ذکر کېږي: یو مسلمان چې کفري هیواد ته ولاړ سي، نو د دې دا مطلب اخیستل کېږي چې هغه خپل ځان د اسلامي قوانینو له سیوري لیري کوي او کفري قانون ته ځان وړاندي کوي او ښکاره خبره ده چې یو مسلمان ته هم دا اجازه نسته.

د جواز د قائلینو دلیلونه:

جمهور فقهاء د جواز رأیه لري او د دې لپاره له دوی سره بنیادي څو دلایل دي:

لومړی دلیل:

د حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د مکې د فتحې په ورځ وفرمایل:

ژباړه: اوس د هجرت حکم پاته نه دی، خو جهاد او نیت باقي دي، کله چې تاسي د جهاد له پاره وغوښتل سئ، نو د جهاد له پاره ووځئ.

له دې حدیثه ښکاره کېږي چې کله د مکې تر فتحې وروسته د عربو په جزیره کې امن راغی او مسلمانانو ته په مذهبي معاملاتو کې څه بندیز نه و، نو د مدینې منورې د هجرت حکم منسوخ سو، حافظ ابن حجر رحمه الله فرمایي:

دا حکم یوازي د مکې مکرمې له پاره نه دی، بلکې هر هغه سیمه چې هلته مسلمانانو ته په اسلامي امورو کې څه بندیز نه وي، په دې حکم کې داخله ده. علامه خطابي او علامه شوکاني رحمه الله فرمایي: د اسلام په پیل کې مسلمان کم و او خواره–واره وو، نو ځکه د دې اړتیا وه چې مسلمانان یو ځای ته راټول کړل سي، د همدې وخت د مصلحت په خاطر د مدینې منورې د هجرت حکم ورکول سو، خو چې مسلمانان په شمېر کې زیات سول او تر یو حده یې قوت تر لاسه کړ، چې ښکاره نښه یې د مکې مکرمې فتحه وه، د مدینې د هجرت حکم هم له منځه یووړل سو. نور بیا...

## له کندهاره تر نورستانه

حبیب الله "قلم مل"

دز پیمه او وروستۍ برخه



د کوټې څخه چې په دوهم منزل کې وه راکښته سوو، زموږ پر مخامخ د قبلې پر طرف یو جګ غر معلومېدی، دواړو طرفونو ته یې غرونه او ټول په درختو پوښلي، په منځ کې یې د روانو اوبو رود دا او بو یو طرف او بل طرف شنه واښه او په وښو کې میده–میده ګلان بیا داسي ښکلا درلوده، لکه د ښایست سامان چې وي. په چپه خوا کې د ونو او فصلونو په منځ کې بیا ختمین او ډېرین کورونه جلا کیف لري.

د رود پر چپه لاس روان و، په لاره کې د لرګو غټ پل په مخه راغلی، پر هغه راتېر سولو، چپ لاس ته مو جګ غر او په ونو پوښلی و.

اصلي د نورستان ساحه او منظره لوړه ده. نورستان پخوا چې اوسېدونکي یې کم وو، دلته به ځنګلي حیوانات ډېر ول، خو اوس ټول لوړ ختلي دي، پر دې نژدې ساحو نسته.

د ځنګله پر لور رهي سولو، تر یو ځایه چې ولاړو، نور مو نفسونه ودرېدل، ځکه ډېره لوړه ساحه وه ټولو ویل چې نه سو تللای.

د نورستان د خلکو رنګونه سره او سپین وو، جګې پزې، خړې او شنو ته ورته سترګې یې وې، جګ ډنګر خلک ول، ټولو زموږ سره پښتو ویل او خپل په منځ کې یې نورستاني ژبه ویل، موږ په نورستان کې تر داسي حده ولاړو، چې د بدخشان مرکز فیض آباد ته یو کلی پاته و.

نورستان پخوا د کافرستان په نامه یادېدی، کله چې د امیر عبدالرحمن خان په وخت کې دوی اسلام ته دعوت کړل سول، بیا به نو له نژدې ساحو ملایان او محتسبان ورتلل، دوی ته به یې دعوت ورکاوه، د دوی کوچنیان به یې خپلو سیمو ته بېول، هلته به یې دیني تعلیم ورکاوه، کله چې به هغه غټ او په دین پوه سول، بیا به راتله، کلي، خپلوانو او کلیوالو ته به یې د دین دعوت کاوه او هغه به یې مسلمانان کول، په دې ډول سره په نورستان کې اسلام خپور سو.

پای

## د پټاټو کرهنه Potato Cultivation

د پټاټو (کچالو) کرهنه د مهمو برخو څخه ده، ځکه چې پټاټې یو اساسي غذایي نبات دی چې په ټوله نړۍ کې یې خلک خوښوي. دلته د کچالو کرلو په اړه تفصیلي معلومات درکول کېږي.

د کچالو کرلو له پاره مناسب شرایط:

**آب و هوا:** کچالو معتدله هوا خوښوي.

د ۱۵ – ۲۵ درجو سانتي ګراد تودوخه د کچالو د ودي له پاره مناسبه ده.

که هوا ډېره ګرمه سي، نبات سوځي او که ډېره سړه وي، وده یې کمزورې کېږي.

خاوره: پټاټې په هغه خاوره کې ښه حاصلات ورکوي، کوم چې په زیاته اندازه عضوي مواد او همدارنګه Sandy loam یا شګلني خاوره مفیده ده او د خاورې pH باید له ۵,۵ څخه تر ۶.۵ پورې وي.

که خاوره په زیاته اندازه شګه ولري، حاصل یې کمېږي.

**اوبه لګونه:** پټاټې اوبو ته اړتیا لري، خو ډېرې اوبه ورکول یې، ریښې خرابوي. داوبو کمښت د پټاټو حجم او کیفیت ته زیان رسوي.

**د تخم انتخاب:** د ښه کیفیت لرونکي تخمونه باید وکرل سي.

صحي او د مرضونو څخه پاک تخمونه غوره کړل سي.

تخمونه باید متوسطه اندازه ولري (50–80 ګرامه).

او داسي تخم انتخاب سي، چې سترګې یا زخې یې زیاتې وي.

**د تخم چمتو کول:** تخمونه تر کرلو مخکې باید غوځ یا پرې کړل سي.

د تخمونو وچوالی او صحت یې وڅېړل سي.

**د کرلو فاصله:** تخمونه باید د یو او بل څخه 25–30 سانتي متره فاصله ولري.

د قطارونو تر منځ، باید 60–75 سانتي متره واټن وساتل سي.

**سري او تغذیه:** د پټاټو (کچالو) له پاره نایتروجن (N)، فاسفورس (P) او پوتاشیم (K) تر ټولو ضرور عناصر دي، کوم چې په زیاته اندازه مصروفوي DAP سره 50 کېلو ګرامه.

سپینه سره سل کېلو ګرامه.

موږ کولای سو چې یوه اندازه Humic acid سره هم استعمال کړو، چې په یو جرېب کې لس کېلو ګرامه وي.

عضوي سره (کمپوست) هم ګټوره ده.

د کرلو پر مهال د اساسي سري ورکول اړین دي.

**دکچالو دکرلو وخت:** په ګرمو ولایتونو کې په دلو میاشت کې او په یخو ولایتونو کې، حوت او یا هم حمل میاشت کې کرل کېږي او همدارنګه ګرمو ولایتونو کې دوه وختونه کې کرل کېږي چې یو هم دلو او بل یې منی یعني مېزان کې.

**د آفتونو کنټرول:**

فنګسي آفت: (Blight) پاڼې وچوي او کچالو ته زیان رسوي.

**باکټریاوي آفت:** د ریښې او ساقې خرابوالی رامنځته کوي.

**آفتونه:**

**کچالو سوګی:** (Potato Beetle)

(Nematodes):

**کنټرول طریقه:**

د آفتونو ضد دواګاني وکارول سي.

د پټاټو زیاتو آفتونو د کنټرول له پاره مختلفي دواوي استعمالولای سو چې عبارت دي له: Copper oxychloride, Azoxtrobine+difenconazole,Antracole

د نباتاتو دوران (crop rotation) وکړئ.

**د حاصل راټولول:** کله چې د کچالو پاڼې ژړې سي، حاصل ورکولو ته آماده دي.

د کچالو راټولول، باید په احتیاط وسي، څو کچالو ته زیان و نه رسېږي.

**یادونه:** د کچالو کرهنه ښه مهارت او پاملرنه غواړي. که شرایط مناسب وي، حاصل به ډېر ښه وي.

## شعر او آدب

# د طلوع زرینې وړانګې

### خوب وړیه!

صابر جان "محصل"

د حوس خیالونو وړی – د حرص په رنځ اخته دی
خیالي خیال پلوونو – له سیالۍ یه غورزولی
جهانګیر خوبونه ویني – مرور له حرکته
هم د نیا او عقبی غواړي – د غفلت تبې نیولی
یو چا داسي ګمان کړی – چې بریا به کړم غیبي ځانته راخپله
چې شاهین کله الوت کړي – ټک وهي خپلې وزرې
د پرواز په تکل ووهي – اوچت اوچت ټوپونه
بیا وزرې راخپرې کړي – د هوا تېزو موجونو ته
چې خپله سینه څېر کړي – فضا خپله کړي په هڅو
پروازونه یې نصیب سي – پاس له وریځو څخه بره
عقابي نظر را خپور کړي – او ښکارزني کړي منګولې
د لوی رب لویه فضا کې – د مطلوب په لټه لټه
هم په مځکه هم هوا کې – لټوي رزق په دریا کې
سترګې ښخې پر هدف کړي – رب یې ورکړي په دریاب کې
هم پر مځکه هم هوا کې – د ټپوس په څېر د مزړګووړی نه وي
د زاغانو په څېر نه چې – لټوي زرق په ډیران کې
د همت له بر کته – رب منګولې کړي ور ډکې
احتیاج څه بده بلا ده – ملتونه مغلوب کاندي
د الوت هڅه په کار ده – دښمن ګرځي په هوا کې
پر بام بیا بلاوي ګرځي – د کلا پر دېوالونو
تور بدمرغ راته بوسنېږي – زما خوارې ورځې شپې ته
حوسېږي او خندېږي – مروره! مروره
له تلاښه مروره! – ای له هیلو او راتلونکي مسافره مروره!
ته د وخت ابن سینا سه – له تخنیکه مروره!
د خلدون له زویه زده کړه! – څه نایابه هنرونه
چې خالد بن ولیدئې – تر بریاوو رسولی
پر دښمن به و بر لاسی – هغه کوم د قوت راز و؟
او بیا کوم فکر او عقل – هنرونه و ورکړي؟
د بریا رمزونه یاد کړه! – او تر ملا وتړه توره
د بازانو په څېر وکړه! – په غلیم دي غوزنګونه
د لقمان وصیت بچو ته – د وحدت ښه توصیه وه
د ځنځیر هري حلقې ته – محکم ورکړه پیوندونه
بیا یاغي اوښ پرې مهار کړه – د وحشي ژوو ځنګل کې
ژوند کول څه اسان نه دی – هنرونه تاکتیکونه
هم تدبیر او کمال غواړي – خوبه وړیه! خوبه وړیه!
بس دی نور له خوبه پاسه! – د وطن سړی مو ته ئې!
ها چې زما دي ورته هیلي – هغه غر سړی مو ته ئې!
یو ویشتم قرن زلمیه! – بهادر سړی مو ته ئې!
د دې عصر له غوښتنو – سره وکړه مجلسونه
د تېر برم ته ورستون سه! – چې نړۍ مو سلامي ته
سي راغبرګه پر ملا ماته – تمدن موږه له هغه چا زده کړی
چې یثرب نوم یې بدل په مدینې کړ

مسـئول مـدير: ـــــ بريالـی "فيـضي"
د تصحيح مسئـول: ـــــ حاجي عبدالله "ذاکري"
کمپوز او ډيـزاين: ـــــ نصير احمـد "صـابر"
د مـديريت شمېره: ـــــ ۰۷۰۵۶۰۸۶۷۳
د توزيع مديريت شمېره: ـــــ ۰۷۰۰۴۹۱۴۳۶
پتـه: ـــــ علامه حبيبي واټ –اطلاعات او فرهنګ رياست
د برېښناليک پته: ـــــ Afghan.tolo@yahoo.com

## د ګڼون کوونکو له پاره خبرتيا!

د طلوع افغان تاريخي خپرونه چي د هيواد په مطبوعاتي تاريخ کي ځانګړی ځای لري. که غواړئ چي د لمريز کال په آخرکي د طلوع افغان تاريخي ورځپاڼي يو بشپړ کلکسيون ولرئ، نو په طلوع افغان ورځپانه کي ګډون وکړئ.

د ګډون کلنی بيـه ۵۰۰- پنځه سوه افغانی، زده کوونکـو او محصلينو ته د تصديق په وړاندي کولو سره نيمه بيه ټاکل سوې ده. اداره

Tolo E Afghan Journal

طلوع افغان مديريت له ټاکلي ليکنيز معيار سره سم، دليکنو په اصلاح کي د لاسوهني حق لري.

ګرانو لوستونکو! په ډېر احترام هيله کېږي، چي دا سپېڅلي پاڼي بې ځايه و نه غورځوئ!

Founded in 1921 ISSue: 67 Established in 1300 Hijri

# اعلانونه او خبرتياوي

## زياتوونکي غواړي

د سپين بولدک ښاروالي غواړي، چي د لاس پلور (رېړۍ) د کلنۍ اجارې قرارداد د اوو کاري ورځو له پاره، د مزايدې اعلان ته وسپاري، چي په اوله داوطلبي کي عين الدين د دين محمد زوی په مبلغ ۵۰۰۰۰۰/۰ پنځه سوه زره افغانۍ ګټونکی سوی دی. هر څوک چي يې تر ياد مبلغ په اضافه پيسو غوښتونکي وي. د سپين بولدک ښاروالۍ ته دي د دلو مياشتي له لسمي نېټې، بيا د همدې مياشتي تر اوولسمي نېټې، د چهارشنبې تر ورځي پوري خپل غوښتنليکونه د بولدک ښاروالۍ د تدارکاتو مديريت ته وړاندي کړي او د مزايدې داوطلبي د دلو مياشتي پر اتلسمه نېټه، د پنجشنبې په ورځ، د ټاکل سوي هيئت په حضور کي، د بولدک ښاروالۍ د تدارکاتو په مديريت کي صورت نيسي.

## قرارداد کوي

د کندهار ښاروالي غواړي چي د کندهار ښار په بېلابېلو ناحيو کي، استنادي دېوالونو په اساسي ډول جوړولو پروژې قرارداد عقد کړي. ټول هغه شرکتونه چي د ياد قرارداد د سر ته رسولو وړتيا ولري، کولای سي چي خپل غوښتنليکونه د ۱۴۰۳ ل کال د دلو مياشتي د ديارلسمي نېټې څخه بيا د همدې مياشتي تر دوه ويشتمي نېټې، د شنبې تر ورځي پوري، د کندهار ښاروالۍ د تدارکاتو او قراردادونو آمريت ته خپل آفرونه تر ټاکل سوي نېټې پوري وسپاري، چي داوطلبي يې د روان کال د دلو مياشتي پر درويشتمه نېټه، د سه شنبې په ورځ، د سهار پر لس بجې د تعين سوي هيئت په حضور کي، د تدارکاتو او قراردادونو په آمريت کي صورت نيسي.

د لا زياتو معلوماتو له پاره دي پر ذکر سوو شمېرو اړيکه ونيسي:

0704701760 -0707970760

## زياتوونکي غواړي

يو دربند سرای چي د پنځمي ناحيې، په حاجي عزيز مېنه، د تاجکانو په کلي کي موقعيت لري. ياد سرای د درو رهنمايانو له لوري في متر مربع په مبلغ ۶۰۰/۰– شپږ سوه افغانۍ قيمت سوی دی. هر هغه څوک چي يې تر پورته نرخ په اضافه قيمت غواړي، خپل غوښتنليکونه دي تر څوارلسو ورځو پوري، د مرافعه محکمې د حقوقو آمريت ته وسپاري او پر ذکر سوې شمېره دي تماس ونيسي: 0706548102

اعتبار نه لري

رحمت الله پوپل د حاجي فيض محمد زوی د انفرادي جواز مالک چي د جواز شمېره يې (75666) ده، ورک سوی. د اعلان تر نشر وروسته اعتبار نه لري.

## دورکي اعلانونه

څه وخت وړاندي د عينو مېني د ملکيت يو سند چي د نعمت الله د عبدالله جان د زوی په نامه دی، د ملکيت نمبرونه يې (150)، موقعيت يې (D2-12) او د فايل نمبرونه يې (18861) دي، ورک سوي دي. هر چا که پيداکړی وي، د افکو کمپنۍ د فروشاتو دفتر ته دې ور وړي او يا دي د ټيليفون په دې شمېرو تماس ونيسي:

0700305088 -0703797374

❖❖❖

يو جلد پاکستانی پاسپورټ چي د روح الله د حاجي محمد د زوی په نامه دی، د کندهار ښار او سپين بولدک ولسوالۍ د لاري په اوږدو کي ورک سوی دی. که هر چا پيداکړی وي، پر ذکر سوې شمېره دي تماس ونيسي: 0703187097

(۱) مخ پاته: د رياست الوزرا اقتصادي...

رامنځته سي.

په افغانستان کي د «يوناما» مرستيال هم ويلي، دوی له اسلامي امارت سره په همږغۍ، په افغانستان کي خپلو پراختيايي او بشري مرستو، راستنېدونکو افغانانو ته د اسانتياوو برابرولو، د خصوصي سکتور ملاتړ، د کوچنيو او منځنيو کاروبارونو ملاتړ، د لږو پورونو له لاري په کليوالي سيمو کي د کوچنيو کاروبارونو رامنځته کولو او دغه راز افغان بزګرانو ته د کوکنارو د بديل معيشيت وړاندي کولو په برخو کي خپلو همکاريو ته دوام ورکوي.

هغه ژمنه کړې چي د افغان بزګرانو د ملاتړ په موخه به پر هغوی اصلاح سوي تخمونه او کېمياوي سرې ووېشي، کوچني بندونه به جوړ او کاريزونه به پاک کړي او همدارنګه نړېوالو سوداګريزو مارکېټونو ته به د افغان کرهنيزو محصولاتو، صنعتي توليداتو او لاسي صنايعو د رسېدو په برخه کي د لازمو اسانتياوو رامنځته کولو له پاره هڅي وکړي.

(۱) مخ پاته: په کندهار کي د کتابونو...

کي د افغان بېسيم مخابراتي شبکې رئيس نثار احمد رحيمي، د کتاب پلورونکو د اتحاديې مشر حکمت الله حکمت، ليکوالانو، شاعرانو او د کتاب سوونو مينه والو ګډون کړی و.

مولوي انعام الله سمنګاني ګډونوالو ته د ښه راغلاست تر څنګ وويل، د تېر په پرتله، اوس د فزيکي کتابونو بازار او د مطالعې دود کم سوی او دا د ټولو ټولنيز مسئوليت دی، چي په ګډه سره د فزيکي کتابونو بازار ګرم کړي او د ځوانانو تر لاسونو پوري کتابونه ورسوي. هغه پر همدې مهال د کتاب پلورونکو څخه هيله وکړه، چي کتاب رانيوونکو ته په مناسبه بيه کتابونه ورکړي.

مولوي اکرم شاه عاصم بيا په دې مراسمو کي د کتاب پر ارزښت خبري وکړې او و يې ويل، د کتابونو مطالعه کول، د انسان د دنيا او آخرت د کاميابۍ وسيله ده.

د کندهار پوهنتون رئيس وويل، د کتاب مطالعه د انسان ذهن پراخوي او په ذهن کي يې نوښت راولي، هغه او پر ليکوالانو او علماوو ږغ وکړ، چي ليکني وکړي.

طيبي په دې نندارتون کي د ځوانانو څخه غوښتنه وکړه، چي د ټيليفون پر ځای دي د کتاب مطالعه وکړي.

نثار احمد رحيمي په کندهار کي د افغان بېسيم مخابراتي شبکې د خدمتونو د يادوني ترڅنګ وويل، د يوې ټولني او يو هيواد په پرمختګ کي د کتاب پر اهميت څوک سترګي نه سي پټولای، هغه قرآنکريم د مطالعې له پاره غوره کتاب ياد کړ.

حکمت الله وويل، د علم د حاصلولو تر ټولو ښه وسيله کتاب دی.

هغه زياته کړه، د ټکنالوژۍ څخه بې ځايه استفاده، اقتصادي ستونزي او د مطالعې په اړه د خلکو ناسم ذهنيت، هغه لاملونه دي، چي په دې ولايت کي يې د ځوانانو فاصله له مطالعې سره ډېره کړې ده.

د يادوني وړ ده، چي د کندهار د اطلاعات او فرهنګ رياست له خوا د افغان بېسيم مخابراتي شبکې په همکارۍ، په دې جوړ سوي درې ورځني نندارتون کي زرونه کتابونه د کتاب د مينه والو له پاره ننداري ته اېښوول سوي دي.

(۱) مخ پاته: د ۹۰ ميليونو افغانيو په...

د نيمروز والي دغه پروژه د ولايت د پرمختګ پر لور يو مهم ګام وباله او ټينګار يې وکړ چي د دې پروژې په بشپړېدو سره به د هوايي ډګر د خدمتونو کيفيت لوړ سي او د ولايت په کچه به په پرمختللي اقتصادي مرکز بدل سي.

هغه د قراردادي شرکت څخه وغوښتل چي د برېښنا د لېږد دغه پروژه به په ټاکلې موده کي په اساسي توګه بشپړه کړي.

باید وويل سي، چي د برېښنا د لېږد دغه پروژه به په درو مياشتو کي بشپړه سي.

د يادوني وړ ده، چي ياده پروژه د روان ۱۴۰۳ ل کال د سلواغې مياشتي پر څوارلسمه څوارلسمه نېټه پيل سوې ده.

(۱) مخ پاته: په علمي ځانګو کي...

ځوانان د لوړو زده کړو په موخه ور معرفي کوي.

بينوا د لوړو زده کړو مؤسسه به ۱۰ تنه ځوانان په کمپيوټر ساينس پوهنځي کي په ۶۰ سلنه تخفيف جذبوي او ۱۰۰ تنه ځوانان به د انجنيري پوهنځي د سېول او برق په څانګو کي په ۶۰ سلنه تخفيف سره جذبوي، چي فيس به يې د محصلينو له خوا ور کول کېږي.

د يادوني وړ ده، چي د ځوانانو چارو آمريت تر دې مخکي هم د ملالۍ د لوړو زده کړو مؤسسې او سبا لوړو زده کړو مؤسسې ترڅنګ، د البلال او ايمان نړېوال روغتيايي علومو د انستيتيوتونو سره ورته علمي تفاهم ليکونه لاسليک کړي ول، چي پر اساس يې ګڼ شمېر ځوانان د لوړو زده کړو په موخه د لوړو زده کړو يادو مؤسسو او انستيتيوتونو ته ور معرفي کېدله.

(۱) مخ پاته: له زرونو بزګرانو سره...

په تخنيکي همکارۍ، د کښته ميوند ولسوالۍ ۲ زره ۵۰۰ بزګرانو ته د څلور ورځو په اوږدو کي د کرهنيزو مهارتونو لوړولو په موخه روزنه ورکړل سوه.

په اعلاميه کي زياته سوې ده، چي په دې روزنه کي بزګرانو ته د اصلاح سوو تخمونو او کېمياوي سرې ذخيره کول، د مځکي مناسب چمتووالی، د پرمختللو کرهنيزو مېتودونو کارول، د کېمياوي او عضوي سرو اغېزمن استعمال، کښتونو ته منظمي اوبه ورکول، آفتونو او ناروغيو کنټرولول، د حاصل راټولول، د راتلونکو کلونو له پاره د تخم ساتنه، پروسس او د وچکالۍ په ګډون د طبيعي پېښو په وړاندي مخنيوي تدابير وښوول سول.

اعلاميه زياتوي، د دې روزني موخه د بزګرانو د کرهني کيفيت لوړول، د حاصلاتو زياتول، د کېمياوي سرو مناسب استعمالول او د کرهنيزو آفتونو او ناروغيو پر ضد مبارزه کول وه.

د يادوني وړ ده چي تر دې مخکي هم د دې ولايت د غورک، ژړۍ او معروف ولسواليو ۵۰۰۰ بزګرانو ته هم د غنمو کرهني، کېمياوي سرو مناسب استعمال او ورته موضوعاتو په اړه روزنه ورکړل سوې وه.

د بل خبر له مخي د کندهار ولايت په دامان ولسوالۍ کي تر ۳ زره زياتو بزګرانو ته د غنمو اصلاح سوی تخم او کېمياوي سره ووېشل سوه.

د کرهني، اوبو لګولو او مالدارۍ رياست وياند محمد حنيف حقمل ويلي، د خوراک او کرهني نړېوال سازمان (FAO) په مالي ملاتړ، د دامان ولسوالۍ ۳ زره ۶۰۰ بزګرانو ته د غنمو اصلاح سوی تخم او کېمياوي سره ووېشل سوه.

ياده مرسته د بزګرانو د کرهنيزو حاصلاتو لوړولو او د کمي مځکي څخه د زيات حاصل ترلاسه کولو په موخه تر سره سوه، چي په کښي هر بزګر ته ۵۰ کېلو ګرامه د غنمو اصلاح سوی تخم، ۵۰ کېلو ګرامه سپينه سره او ۵۰ کېلو ګرامه توره سره ورکړل سوه.

## ټولنيزي رسنۍ

**Amin Stanikzai:**

انسان ډېر تاوان د لالچ، وارخطايۍ، عصبانيت او عاطفې په وخت کي کوي، کله چي په کاروبار کي واست او دا حالت مو تجربه کاوه، نو د پرېکړو کولو څخه ځان وساتئ!

**Nisar Samad Wasifi:**

لوی پند:
خپل راز افشا کول؛ حماقت دی او د بل راز افشاء کول خيانت دی!

**Numan Dost:**

هره دښمني د وينو د احتمالي لښتي ورخ ګرځېدای سي. مخکي تر دې چي دا لښتی وبهېږي، د ورخ وچول، په کار دي.

هيله ده د هري سيمي دښمنۍ په ګوته او بيا يې په دوستۍ د بدلولو له پاره په ټول جديت کار وسي.

نور دي دلته په هيڅ پلمه د هيچا وينه نه بهېږي.

**Dr Aman Shams:**

ماشومانو ته د مور شيدې ډېري ګټوري دي. کله چي مور ماشوم ته تی ورکړي، د دواړو روغتيا ته لاندنۍ ګټي رسېږي.

← ماشوم ته ګټې:
– ماشومان له انتانونو او مکروبي ناروغيو ژغوري.
– د اسهال او استفراق پېښې را کموي.
– هر هغه وخت چي د ماشوم ضرورت سي، د مور شيدې تازه د حرارت په هغه درجه آماده وي چي د ماشوم اړتيا وي.
– خاص د ماشوم له پاره جوړې سوي دي.
– کله چي ماشوم لوی سي، د چاغښت او د زړه ناروغيو خطر يې نسبتاً کم وي.
– له مور سره يې اړيکي پياوړي کېږي.

← مور ته ګټې:
– د تيو او تخمدان د سرطان خطر کموي.
– د هډوکو د کمزوري کېدلو خطر کموي.
– د زړه د ناروغيو خطر کموي.
– د چاغښت خطر کموي.

**Sadiqullah Afghanzai:**

په کورنۍ کي له بد نيتۍ، بد بينۍ او تنګ نظرۍ څخه لاس واخلئ، يو د بل څخه په کار کولو کي مشورې واخلئ، پوره اخلاص وکړئ تر څو رزق مو زيات سي.

**حسيب "نورمل":**

هر څه ته زړه مه خوره؛ ته د ټولي نړۍ د ستونزو مسئول نه يې.

(ژباړه: نورمل)